خپل ایمان او وجدان ووائی ، چی د روس د ټانکـونو او طیارو په مقابل کی د غنمو په بوریو بانـدی جنګ کیږی چی امریکا د غنموبوری (بوجی) مهاجرینو ته راولیږلی ګـوندی پدی باندی به د روسانــو مقابله وشی . آیا روسان دومره احمقان دی چی د امریکا د بوریــو په مقابل کی ټانکــونه او طیاری راولی؟ یا- امریکائیان دومره ناپوه دی چی د روس د ټانکونو او طیارو په مقابل کی د غنمو په بوریو او پرستنو باندی جنګ کوی دا خو هیڅ ذی عقل انسان نشی تسلیمولای او نه د منلووړده ؛ تیکده چی مهاجرینو ته دی دانسانی همدردی په اساس خوراکی مواد ، ملابسه ، ادویه وغیره راغلی وی، او دا هم پدی حیثیت باندی دی چی غیر د روسی بلاک نه نور د ټولی دنیا هیوادونه مسلم دی او کـــه غیر مسلم، اشتراکی دی او که غیر اشتراکی، پدی پوهیږی چی روسان ګرمو اوبو او د فارس خلیج ته را تلل غواړی ، هلته افغان مجاهدین ورسره په جګــړه بوخت دی، او همدا افغان مجاهدین دی چی دروس مقابله کولای شی او کوی ئی. نو دوی دمجاهدینو ملاتینګوی که په بوریو، پرستنو، ادویه کمبلو او که په هرڅه تینګیده دا تعاون او ملاتــړئی کوی . لیکن دا تعاون او ملاتړ نظامی او عسکری ندی محضی سیاسی،

اقتصادی او اخلاق تعاون دی .

ورونو ! زمونږ اعتراض په افغانستان کې د روسی عسکرو په موجودیت باندی دی . د روس د وسلې او نورو عسکری تجهیزاتو څخه مونږ هیڅ خوف نلرو ، او که بالفرض دامی وی لومونږ دی ته هم تیاریو چې خلقیان او پرچمیان دی دروسانو د نظامی کومک باوجود زمونږ سره وجنګیږی . باور لرو چې هرچاته به ثابته شي چې د روس نه بغیر ددی غلامانو او برهیڅو په افغانستان کې څه حیثیت دی ؟ د خدای(ج) په فضل وکرم سره به په یوه هفته کې هغوی نابود او محوه کیږی . لیکن زمونږ اعتراض په افغانستان کې د روسی عسکرو په موجودیت باندی دی . د مجاهدینو د با خبرو ذرائعو مطابق په افغانستان کې د روسی عسکرو تعداد دوه سوه زروته رسیږی ، البته د روسانو په قول یوسلو پنځلس زره او د غربیانو په قول که یوسلو دیرش زره او که یوسلو شل زره تخمین کیږی . بحرحال دغه مسئله بالکل یقینی او په ثبوت رسیدلی ده چې په افغانستان کې جنګ د مجاهدینو او روسانو ترمنځ دی ، او دا خبره یو منلې حقیقت دی او د تولی دنیا مسلمانانو تسلیم کړیدی چې مجاهدین د اسلامی دین د ارتقاء په خاطر په جهاد بوخت

دی، او په همدی ملحوظ ورته د جهاد په نوم قائل دی. لو له دغو مجاهدینو سره مرسته او مدد کول د ټولی اسلامی نړی ایمانی او وجدانی وظیفه ده چی وئی کړی، او داځکه چی مسلمانان مغلوب او وطن ورڅخه نیول شویدی ، او داهم ثابته مسئله ده چی کله کفار له مسلمانانونه یوه لویشت مځکه ونیسی، یا ئی یو مسجد تخریب، اویائی د یو ما شوم عقیده خرابوی، لو په دی صورت کی په نږدې مسلمانانو باندی جهاد فرض عین گرځی که چیری داسلام دی حکم ته ورګوو نونن ئی دافغانستان دمسلمانانو نه په لکهاوؤ ښځی ، ماشومان ، او سپین ږیری شهیدان کړیدی او په زرګونو ماشومان ئی ورڅخه بیولی دی ، د جوماتونو او قران پاک بی حرمتی ئی کړیده ، او د قرآن کریم بی شمیره نسخی ئی سوزولی دی نونن د ټولی نړی په مسلمانانو باندی د جهاد ملاتړ فرض عین ګرځیدلی دی، دا د دوی مسئولیت او فرض دی چی وئی کړی . خو له بده مرغه چی اسلامی نړی تراوسه پوری خپل فرض په پوره ډول اداء کړی نه دی .

دریمه مسئله داده چی ! ځینی ورونــه فکر کوی چی د افغانانو هجرت او جهاد د پاکستان لپاره یو درد سر او غم دی. د پاکستان امنیت ئی خراب ، په اقتصادئی بــوج ، ښارونه ئی

تنگ ، تجارت ئی خراب او همدارنگه ئی د نورو ستونذو سره مخامخ کړی دی . معهذا د مهاجرینو په منځ کی جاسوسان رانوزی تخریب او دار اچونه کوی . دا خبره صحیح ده چی جهاد شروع شو روسانو جارحانه تیری وکړو مهاجر پاکستان ته په راتګ مجبور شوؤ او پاکستان ئی دزړه د خلاصه ملاتړ او هرکلی وکړو ، او پاکستان پدی بساندی د روسانو دښمن شو . روسانو چی څرنګه په افغانستان کی خپل ایجنټان او غلامان پیدا کړی دی غواړی چی په پاکستان کی ئی هم پیدا کړی، او د همدی زرخریده غلامانو پذریعه د لته هم وران کاری رامنځته کړی. نولهذا داسی فکرکول چی د مهاجرینو د راتګ په وجه دلته تخریبی سرګرمی زیاتیږی غلط دی . دا تخریبی سرګرمی روسانو د خپلو مخصوصو مقاصدو د حاصلولو لپاره جاری ساتلی دی دمهاجرینو دراتګ سره ددی هیڅ تعلق نشته، ترکومه پوری چی د مهاجرینو تعلق دی نو دوی صرف د خدای(ج) او رسول (ص) د احکاماتو مطابق هجرت کړیدی .

د اسلام غرتمندو ورونو! مونږ که داسلام احکامو او د خدای (ج) امرته وګورو نو پاکستان ته د جهاد او هجرت په سبب خبطر ندی متوجه شوی لکه د لته چی دا څینی دوستان

وائی چی د مهاجرینو د راتک سره خطر متوجه شوی چی، ترڅو پوری مهاجر دلته وی او روسان په افغانستان کی وی نو داخطر به پاکستان ته متوجه وی . په دی کی هیڅ خطر نشته ځکه نبی کریم(ص) چی د اصحابو کرامو (رضی‌الله عنهم) په شمول د مکی نه مدینی منوری ته هجرت وکړ ، نو د اسلام ټول دښمنان په هغه وخت کی د مدینی منوری د مسلمانانو دښمنان شوی ؤ، خو پدی وخت کی اسلام کوم نظام او قانون جوړ کړ ، اسلام دامی حکم فرماء شو چی! کوم کسان چی مهاجرینو ته په زړه کی په بد نظر ګوری ، د مهاجرو په راتګ ناخوښه دی ، او د مهاجرو راتګ د ځان لپاره خطر بولی دا منافقین دی . بالعکس کوم خلک چی د مهاجرو په راتګ خوښ دی د پیغمبر (ص) او د هغه د ملګرو راتګ د ځان لپاره امن او عزت بولی ، دا خلک واقعي مسلمانان دی . او بیا د زمانی لیدونکو داهم ولیدل ، که چی پیغمبر (ص) او صحابه کرام (رضی‌الله‌عنهم) د کفارو مقابلی ته ودریدل، خدای(ج) ورته بی شمیره فتوحات وربه برخه کړل ، او بیا هماغه پیغمبر(ص) او انصار ؤ چی په ښ زره فوخ ئی مکه معظمه . حنین . طیب او د عربو جزیره فتحه کړل. هغه پیغمبر(ص) ؤ چی تبوک ته دهرقل دمقابلی لپاره

تللو هغه مهاجر او انصار ؤ چی هغوی کابل ، فارس ، ایران ، عـراق ، انـدلس ، افـریقا ، شام ، صفه ، او یمن تـه دفتحی لپاره تلل او فتحی ئی حاصلولی ، بیانو هغه خطره چی د مدینی منوری مسلمانانو ته د تولی دنیا لخوا مـوجـوده وه پداسی امنیت او حکومت بدله شوه چی پـه نتیجه کی پـه تولـه دنیا باندی د مدینی منوری حکومت جـوړ شو . کـه نن هم مونږ انصار او مهاجـرین د خـدای(ج) د حکم مطـابق د جهاد لاره اختیار کړو نـو د اسلام د عظمت دا تـاریخ یـوځـل بیاهم تکراریدای شی . روسان نه صرف په افغانستان باندی د حملی کولو په نتیجه کی د جارحیت مرتکب شویدی بلکه د روسانو له خوا دا ارتکاب د پاکستان په خلاف هم یـو جـارحیت بلـل کیږی ، په افغانستان بـاندی د روسانو حمله عیناً پـه پاکستان باندی تیری دی لکـه څرنګـه چی د افغانستان پـه مسلمانـانـو بانـدی جهاد فـرض عین دی ، همدارلګه پــه پاکستانی ورونو باندی هم فرض دی چی افغانستان تــه لاړشی او د روسانو مقـابلـه وکړی . او داځکـه چی د پاکستان او افغانستان د مسلمانـانـو دین او اسلام سره د دیورند د کرښی لــه امله چی انګریزانو ورته پـه منځ کی راکښلی وه نشی جلا کیدلای ،

نوکه چیری دا د پاکستان مسلمانان د روس قوت او طاقت حملته خنثی او تا راج کړی ، په بیرته ئی د ماوراءالنهر نه آه خواته وشړی ، نو د پاکستانی مسلمانانو ښځی ، ماشومان ، او کورونه به د روسانونه په آمن پاتی شی .

لکه‌نبی‌کریم(ص) چی دهرقل دمقابلی لپاره دمدینی منوری نه تبوک ته لاړ ، په تبوک ، یرموک او موتی کی ئی جنګونه ورسره وکړل دښمن ئی حملته خنثی کړ او مدینه منوره د آمن په کور بدله شوه . که چیری همدارنګه روسان هم په افغانستان کی نابود او محوه نشی ، نو په تدریج سره به په پاکستان ، دګرمواوبو سمندر، او خلیج ته ځانونه ورسوی، او د پاکستانی ورونو دغه دامن کوربه خدای(ج) مکړه په بی امنیتی باندی بدل شی ، او لکه افغانستان چی د روسانو ترفشار لاندی دی پاکستان به هم راشی دا د الله‌تعالی حکم دی او الله تعالی(ج) فرمائی! ﴿الا تنفروا یعذ بکم عذاباً الیماً﴾ مسلمانانو پوه شی ! که جهاد ته ونه‌وزی خدای (ج) به د هغو کافرو پذریعهٔ تاسوته دردوونکی عذاب درکوی ، او د جهاد دنه کولو په سبب به خدای(ج) هغوی په تاسو باندی مسلط کوی .

نو د اسلام غرتمندو ورونو ! د پاکستان خلک دی دغه

قدر د ځان لپاره وپيژنی چی د مهاجرينو پـه راتگ ، پـالنـه او د مجاهـدينـو پـه جهاد کولـو کی د دوی امنيت ، مصئونيت ، حفاظت او وقـار دی . پاکستان به پدغه جهاد پـانـدی ساتل کيږی که خدای ناخواسته دغه جهاد مسقوط او يا کمزوری شی، پاکستان چی د کلونو راهيسی د انگريزانـو تحت اثـر ؤ اوس خلوينښت کاله کيږی چی الله تعالی د اسلام پـه آزادي برخمن کړيدی که دوی د کفارو سره جهاد او قتال ونکړی ، دوی بـه خدای ناخواسته داخـل د روسانـو تر تسلط لاندی راشی ، او الله تعالی به د سزا په ډول د پاکستان مسلمانان دويم ځـلی د پردو غلامان کړی ، او دا ورکړل شول آزادی بـه د جهاد په پريښودلو سره بيرته ورله واخـلی. نو پـدی مسئله دوی تـه غورکول په کار دی چی د مهاجـرو پـه راتگ او پالنـه بانـدی پاکستان ته بی امنيتی نده متوجه شوی بلکه د جهاد په بر کت به الله تعالی پاکستان د روسانو د ناپاکـو عزائيمونه محفوظ وساتی .

د افغانستان مجاهـدين نـه يـوازی د پاکستان د سالميت او بقاء لپاره بلکـــه د ټولی اسلامی نړی د ساتنی او تحفظ لپاره دروسانو په مقابل کی يو سد سکندر او آهنیديوال دی. خوپدی

شرط چی دا دیــوال د گاوندی مسلمانانـو پــه لاس د تخریب په عوض مظبوط ، تقویه او پشتی شی ، او کـه خدای نا کرده دا دیوال تخریب او ړنگ شو ، نو دا کــوم بمونـــه چی نن دافغانستان په سرحدی سیموکی خلاصیږی که یوه ورځ دپاکستان په ښاورونو باندی ولوئیدل نو په میاشتومیاشتو به څوک مړی او زخمیان راونه کاږی او خدای(ج) مکړه مخلوق به ټول تباه شی.

یقین وکړی که د هندوکش په سردرو کی د روسانو مقابله ونشی . نو د پاکستان په شگلنو ډاگوکی بیا د هغوی سره جگړه او مقاومت کول گرانه ده .

د اسلام خوږو ورونو ! زما څلورمه او اخری مسئله داده چی! د ځینو ورونو سره دا اشتباهات او تشویشونه دی او وائی! روسان چی کوم ملک ته داخل شوی نـو بیا د هغه ملک څخه ندی وتلی ، نـو آیـا روسان به د افغانستان نـه د جنگ پـذریعه ووزی او کنه ؟

د اسلام غرتمندو ورونو ! علم غیب او د مــا بعد علم یوازی د الله تعالی(ج) صفت دی ، خو د الله تعالی په ارشاداتو او فرمودو باندی مونږ او تاسو دا حکم کولای شو لکه چی الله پاک مسلمانوته فرمایلی دی ! تاسو جهاد کوی کومه زمکه

او وطن چی کافرو درځخه نیولی وی ، زه ئی درته فتحه کوم ، د کفارو ویره به درځخه زائل او امن به دربانندی راولم او لازم اسباب به درته مهیاء کړم . او بیا پدی هم عقیده لرو چی الله پاک زمونږ سره وعده کړی چی تاسو به د ځمکی په مخ خلیفه‌گان گرزؤم ، مرسته به درسره کوم او باطل به درته محوه او نابود کړم ، خو پدی شرط چی تاسو جهاد وکړی بیا هر کله که تاسو د ډیر تکلیف سره مخامخ شی چاره مو نه وی ، هره لاره دربانلدی بنده شی ، نوزه به موخامخا نصیر او مدد گار شم ، غیبی خزانی او مرستی لنه ما سره دی . مونږ اوس ددی خبری زیاتی علامی وینو ، او گورو چی اوس روسان د مغلوبیت او وتلو په حال کی دی ، برخلاف مجاهدین د کامیابی په درشل کی مشاهده کوؤ . غوارم چی ددی څونښی تاسی ته بیان کړم !

محترمو مسلمانانو ورونو ! په افغانستان کی چی کله سوسیالیستی حکومت راغی نو ظاهرشاه ورته زمینه برابره کړی وه. ښه می په یاد ده چی مونږ به دظاهر شاه او دهغه د بریځو (خلقیانو او پرچمیانو) پر ضد مظاهری کولی ، چی دا نظام باید محوه او نابود شي ، اوپر ځای ئی یو داسی اسلامی نظام

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم اما بعد : فأعوذ بالله من الشیطن الرجیم ط بسم الله الرحمن الرحیم ط

﴿یایها النبی حسبک الله ومن اتبعک من المؤمنین﴾

(الانفال - ٦٣)

﴿یایها النبی حرض المؤمنین علی القتال﴾(الانفال - ٦٤)

گرانو مشرانو- کشرانو - انصارو - مهاجرینو او مجاهدینو ورونو ! اسلام علیکم ورحمة الله وبرکاة : د جهاد مسایل او فضایل محترمو علماء کرامو او نورو ورونو تاسو ته په تفصیل سره بیان کړه . دغه مخلص ورونه چی د جهاد جذبو او ولولوئی په زړونو کی ځای نیولی دی ، او د جهاد په جذبه سره سرشار دی ، زه به دوی ته په تفصیل سره د جهاد په هکله احکام ، په سترگو لیدلی پیښی او هغه کرامتونه بیان کړم، کوم چی دروان جهاد په اوږدو کی مونږ د نږدی نه لیدلی اویا مو اوریدلی دی .

افسوس دی چی زه ددی ورونو د ژبی (اردو) سره آشنا نه یم، او نه دغه عزتمند ورونه په پښتو ژبه پوهیږی. اکه څنگه چی تاسو ته معلومه ده د روان اته کلن جهاد په لړکی اوس هم ځینی ورونه شکمن دی او خلکوته داسی شکمنی مسئلی تکراروی چی د منلو وړنه دی . نو غواړم چی د دغو شکوکو او

رامینځته شي چې د ژوند په ټولو قسمتونو کې د اسلام د حق او مبین دین څخه برخوردار او ټول کړه وړه ئې د قرآن او حدیثو په رڼا کې صورت و مومي. د هغه نه وروسته داؤد راغی داؤد چې ختم شو ، څو شپې او ورځې تره‌کی او حفیظ الله امین هم تیری کړی ، او بیا د خپلو اعمالو په جزا ورسیدل. وروسته د څه کمې مودې لپاری کارمل راغی خو داهم ډیر ژر او په لږ وخت کې اوت او د قدرت له گدی څخه راکوز کړای شو ، ده پسې د نجیب نوبت شو ، خدای خبر چې د ده انجام به څنګه وی، او په کوم ډول به ئې له منځه وړی. دا ټول روسی غلامان او بریځی په خپل خپل نوبت د خپلو بادارانو له لاسه وژل شوی دی ، څکه چې دا د هغوی فلسفه او منطق دی ؟

ورونو : ظاهر شاه مونږ نه دی شړلی ، داؤد ، تره‌کی او حفیظ الله امین مونږ ندی وژلی ، کارمل مونږ له تخته ندی راکوز کړی . دا نجیب به هم خدای خبر چې دوی مړ کوی او که څه به ورسره کوی ، نو یوه علامه داده چې پدی دومره لږوخت کې داسې لیډران چې هغه روسانو ته منلی او وفادارو، او د انقلاب قهرمانان ئې هم بلل له منځه لاړ او ختم شول . او دا ټول پخپله هغوی یو پربل پسې ختم کړل . په دوهم ارخ

کې د روسانو درې لوی لوی حاکمان بریژنیف ، اندروفوف او چرننکوف پدغه کم وخت او لږه موده کې خدای (ج) نیست او نابود کړل او ټول ئې پخپلو شومو او ناوړه پلانونوکې ناکام او نامراده کړل . د روس له سیاسی تاریخ نه دا څرګندیږي چې روسانو د خپل هیواد ډیر لوړ رتبه مامورین او پاچاهان د خپلو مقاصدو لپاره د استعمالولو نه وروسته وژلی او دا سیاست ئې په هر هیواد کې عملی کړی دی . نو په افغانستان کې هم د روسانو په لاس د خپلو بریڅو اومرئیانو وژل د مجاهدینو د کامیابی لپاره یو مثبت دلیل دی ، دوهم دلیل دا کیدای شي، چې د جهاد په اوائلوکې‌مونږ دومره‌کمزوری‌ؤ چې اسباب، پوهه او جنګی تجربه خو څه‌کوی . حتی خوراکی مواد مو نشوای پیدا کولای ، موږ به په غره کې پانې راټولولې او تیکه به مو ورسره‌کینښوده پیابه مو څادر پرې اچاوه او ارام بـه مو پرې کاوه ، آس ، کچـر ، موټر ، مخابـره ، توپ او ماشیندار زمـونږ سره نـه ؤ پـه لـومړی ســر کې وسـائلی تـه ضـرورت ؤ ، مـونږ نـه لـرلـه ، جنګی پوهې او تجربې ته ضرورت ؤ ، نـه لرله ، د حمل‌ونقل وسائلو ته ضرورت ؤ، مونږ نه لرل، دجنګ لپاره مخابرې، تربیت او نظم و نسق ته ضرورت ؤ، مونږ نه لرل، همدا رنګه دزخمیانو

د علاج معالجې لپاره ماهرو ډاکترانــو او ادويې ته ضرورت ؤ ، مونږ دا هم نه لرل . دا لاځه چې د دنيا د خلکــو همـدردی او زړونه له موږ سره نــه ؤ . ليکن د جهاد په برکت پــه دی اتوکالوکی د الله تعالی عظيم احسانات پــه مونږ شوی دی ، او پــه بې شميره انعاماتو ئې زمونږ حوصلې لوړی کړيدی . د جهاد له برکه اوس زموږ سره د وسلو او جنګی سامان هيڅ قيلت نشته د حمل و نقل وسايل دومره زيات دی چې شميرل ئې ممکن ندی د ملابسی ، ادويې او ډاکترانو همدا حال دی . د خدای (ج) فضل و کرم دی چې مجاهدين اوس په عسکــری نظم و نسق معمور دی . هغه مدرنې او ثـقيلې وسلې چې طيـاری او ټانکـونه پرې تخـريب کيږی ، نـن د مجاهـدينو سره دی . همداراز د مخابرو سيټونه له حسابه وتلی دی ، د يو مرکز نه تربل مرکز پوری؛ د يوی ولسوالی نه تربلې ولسوالی پوری، او د يو ولايت نه تربل ولايت پوری ټول ارتباطات د مخابــرو پواسطه صورت نيسی . اوس زمونږ ټول جنګونه د مخابرو او وارلسو له لحاظه پياوړی دی . د دی ټولو ذکــر شويو انعامونوله علاوه د لوی خدای(ج) عظيم احسان دی چې نن نه يوازیداسلامی هيوادونو بلکه د ټولې نړۍ د خلکو زړونه او همدردی زمونـږ سره دی

لنده دا چې تراوسه پورې چې خدای(ج) زمونږ سره کوم امداد او نصرت کړيدی، زمونږ ايمان او يقين دی چې آئينده به ئې هم راسره کوی ، موږ اوس ددی خبری نه فکرمند يو چې که مونږ دالله‌تعالی په عطاء کرده احساناتو او انعامولو شکرونه‌پاسو سپاس گذارنشواو پوره استفاده تری ونه کړونو کيدای‌شی چې الله تعالی راپاندی د شکردنه اداء کولو په سبب خپل تائيد او نصرت بند کړی . نو لهذا مونږ ته ددی خبری نه قطعاً پروا نشته ، چې کوندی‌زمونږ جنگی سامان او نور مادی وسايل به ختم او جهاد به مومتوقف شی، ځکه زمونږايمان او يقين دی نصير خدای(ج) چې د خپلو وعـدو مطابق زمونـږ سره کومـه بی ساری مرسته کړی ده ، هغه ذات به ئی آينده کی هم راسره کوی .

مسلمانانو ورونو ! د جهاد پـه دوران کی چـی الله تعالی زمونږ سره کوم مدد او معاونت کړی دی د هغه اندازه د يوی پيښی نه هم کيدای شی. يوه ورځ يوه عجيبه او غريبه پيښه وه، او هغه داچې د جهاد ابتدائی حالت ؤ ، مونږ د خوراکی موادو دترا کم له ابله ډير په تکليف ؤ حتی چې په غره‌کی يوه ونه ده چې د هغی ميوی ته (پيرگی) وائی دا بـه مو خوړل ، د سهار له لمانځه وروسته دقبلی خواته کومه عسکر پدی تشويش کی‌وم



چې خدایه! د مجاهدینو داحالت به څرنګه شي یو آس یا کچرنه
لرو چې غاله یا زخمي پری حمل و نقل کړو ، پیسې خرڅ ،
خوراک او نور مادي وسایل راته مهیا ندي ، که جهاد پرېږدو
منافقین او ګنهکار کیږو ، او که ئې کوو نوهیڅ هم نلرو .
په همدې فکر کې وم چې په ناسته باندې ویده شوم ، د شپاله خوا
یو سړی راغی او د ډیرې غصې په حالت کې ئې زما په شالاس
کیښود ، او په ډیره قهرجنه لهجه سره ئې راته وویل! چې دیرش
دوه دیرش کاله عمر دې تیر شو (۱) خدای(ج) ساتلې او رزق ئې
درکاوه ، اوس چې د خدای(ج) په لاره کې جهاد کوې آیا ستا په
خدای(ج) باندې داسې غلط ګمان دی ، چې تا اوستا ملګروته به
رزق نه درکوي؟ داسې غلط ګمان هیڅکله مه کوه ، ته چې د
خدای(ج) په لاره کې جهاد کوې د رزق خواری او مشقت به
درباندې نه وي ، پدې ونوکې به څوښې درته راځورندې وي .
کله چې د خوبه بیدار شوم ، ملګروته مې خوب تیر کړ ، غالباً
دوه ساعته وروسته یوه سړی دوه داني څیراتي پسونه راوستل او

۱ - کله چې مولانا صاحب د روسانو او د هغوی غلامانو پرضد
وسله وال جهاد پیل کړنو د هغه عمر دوه دیرش کاله ؤ .
مرتب



ملګرو هغه پسونه حلال کړل . باور وکړی چی ما ورته نه ؤ وېلی ملګرو پـه هماغو ونـوکی خوړند کـړی ؤ ، د کومو ونو طرفته چی یوه سړی ماته په خوب کی اشاره کړی وه . زما په یاد دی چی په هماغو ونوکی مو بیا اوه دانی نور خیراتی پسونه حلال او راخوړندکړه . اته کاله پخوا می دا خوب لیدلای دی ، له هغی ورځی‌نه وروسته می‌بیا دا فکر ندی‌کړی، چی دمجاهدینو خرچ ، خـوراک ، ملابسه او نـور ضروریـات به خنګه شی .

داددی خبری یوځرګند ثبوت دی چی‌کوم خلک چی دخدای(ج) په لاره کی جهاد کوی ، نـو الله تعالی د هغـوی لپاره سـادی وسایل برابروی ، او د هری نګاه نه ئی مرسته او کومک‌کوی.

په دی تیرو اتوکالوکی چی مجاهدینو د الله تعالی د مرستی او نصرت پواسطه د جنګ په برخه کی کوم پرمختګ کړی دی غواړم چی په هغه باندی هم لږ څه بحث وکړم . پـه لومـړی سرکی چی د مجاهدینو او حکومت‌کوم حال ؤو ، هغه مو مخکی په‌تفصیل سره بیان کړ. اوس چی دمجاهدینوکوم حال دی نو هغه د پخوا څخه مختلف او په یقینی ډول د حکومت څخه څوچنده مترقی او پرمخ تللی دی ، او دښمن اوس په تمامه مانا د ذلت او تنزل په حال کی دی .

د روسانو د راتګ له د مخه د تره‌کی په دور کی به زمونږ په مقابل کی ټانکونه جنګیدل ، او مونږ به ورڅخه پریشان‌ځکه‌ؤ چی د ټانک ضد وسله مو نه درلوده ، نن سبا د خدای (ج) په فضل و کرم سره د ټانک رول یو مخی ختم شویدی ، اوس د مجاهدینو د یوه ورکوټی ګروپ سره دومره د ټانګ ضد وسله شته ، چی د ټولی فرقی سره پری مقاومت کولای شی او د فرق زور پری نه رسیږی . همدارنګه مخکی به مونږ د جیټ او هیلوکاپټرو نه د جنګ په برخه کی یو څه قدری تنګ ځکه‌ؤ چی مونږ طیاره شکن ماشیندار او مدرنی وسلی نه درلودلی . اوس د مجاهدینو سره دهوائی قواؤو دمقابلی کولو لپاره‌ګڼ شمیرخفیفی او ثقیلی وسلی موجودی دی او د هوائی قواؤو رول ئی هم د زمینی قواؤوپه‌څیر دپخوا په نسبت کاملاً بی اثره شوی دی او دناکامی سره مخامخ دی. همداراز د بلی خوانه د نجیب د حکومت هیلی او بهانی د مثال په ډول دزبندی ، ملی روغه جوړه ، مخلوط حکومت ، پلار وطنی ملی جبهه جوړول او داسی نور دمجاهدینو پر ضد فعالیتونه لکه د پیسو پذریعه د قومندانانو ترورکول ، قبایلی خلک د مجاهدینو په مقابل کی راهڅول او په پاکستان کی له تخریب کاری کولو سره سره د مهاجرو او انصارو ترمنځ

کړکیچ او خړه پړه فضاء پیدا کول ، دا ټولی سوامړی دسیسی او توطیئی د دوی په ناکامی او شکست باندی منتج شوی .

اوس خپله اخرنی حربه دا استعمالوی ، او وائی! چی شپږ میاشتی اوربند راسره ومنی، او دروغی جوړی مینرته راسره کښینی همدارنگه اوس ئی د اشرارو تکی لیری کړیدی ، او مجاهدینوتـه د مړورو وروڼو په عنوان سره خطاب کوی .

او وائی چی راځی راپخلاشی مخلوط حکومت به جوړ کړو، او دمخلوط حکومت به چوکاټ کی په دوینو توبولو او ورووژنی په عـوض د ورور ګلوی او محبت فضاء جوړه کړو .

متیقین یو چی دتیرو سازشولو او حربو په څیر به دا حربه هم یو مخی بی اثره اود دوی په ناکامی باندی تمامه شی . موږ چی دمجاهدینو ننني حالت دپخوا په نسبت ګورو له هری نګاه نه ښه دی. څکه‌چی پرون اسلحه راسره نه وه نن شته، تجربه مونه درلوده نن شته، مال مونه لاره نن‌شته. همداراز کومی خالیګاوی چی پرون موجودی وی نن پوره او ډکی شویدی . او بالعکس دښمن‌چی پرون کوم شی لاره هغه نن نشته ، پروسږ کال ئی چی کوم‌شیان په جنګ کی مؤثر ؤو هغه سږکال یو مخی بی اثره پاتی شوی دی ، همدارنګه هـرڅـه ئی د پرون په نسبت نن د تنزل

حالت طی کوی . په دی اتوکالوکی هغوی ونتونیدلای شول چی چیرته یوه ولسوالی جوړه کړی ، مدرسه اعمار کړی ، اویا خپل سړک داسی کنترول کړای شی، چی په قطار ئی مجاهدین دزی ونه کړی . مدرسی او مکتب ته ئی شاګردان ورشی ، خپل تلیفونی روابط قایم وساتی ، دا هیڅ ئی له قدرته پوره نشول او نه پری قادر دی چی وئی کړی .

او د مجاهدینو په لاس داسی کارونه شوی دی ، چی موږ په تیرو اتو کالونو کی یو هم نشوای کولای .

د مثال په ډول پخوا په ټول افغانستان کی مجاهدینو راډیو ستیشن نه درلـود ، اوس دوه صرف زمـا سره دی ، چی د ورځی پنځه ساعته په ټول افغانستان کی خبرونه نشروی بلکه د روس په جنوبی مستعمره ښارونو کی هم لکه سمرقند ، تاشکند او داسی نور، زموږ خبرونه او نشریات اوریدل کیږی ، چی په همدی نسبت موږ په خپلو نشرانوکی روزانه د وه ساعته په روسی ژبه خپرونی لرو. همداراز مخکی به د مجاهدینو سره د یوه اخباره او رسالی د چاپولو امکانات نه ؤ ، نن وګـوری څومره رسالی او اخبارونه د مجاهدینو لخوا پـه پښتو ، فارسی ، عربی ، انګریزی او اردو ژبو چاپ توزیع او تکثیر کیږی ، څومره جـرایـد او

خبرونــه خپریږی ، او څومره خاک د حق د لاري مجاهدینو ملاتړ کوی . دا ټول د دی خبری دلیلونه دی چی خــدای(ج) ددی جهاد ملگری دی، او بې له کوم سبب نه دمجاهدینو سره مرسته او نصرت کوی ، او د روسالو په څیر دښمن ئی د ذلت او رسـوائی سره مخامخ کړیدی . لکه څنگـه ئی چی ئی وسلی او نظامی قوت بې اثره شـو ، لیډران ئی پاتی راغلل ؛ همد رنگـه به خـدای (ج) روسانـ هم د افغانستان نـه پـه ذلت او رسوائی سره ورک کړی . او دا پاکه خاوره بـه د وحشی صفته روسانـو د نا پاکو او پلیتو قدمونو نه پاکه او ازاده کړی ، او موږ به په گران افغانستان کی د یـو اسلامی حکومت خاوندان کړی ، انشاء الله .

زما د اسلام خوږو ورونو ! زه په خپلو اخری گذارشاتـو او خبرو کی تاسوته داډ او اطمئینان درکـوم ، چی تاسو بـاور وکړی او مطمئین اوسی ، چی د افغانستان مجاهدین اوس خپل بری حتمی بولی هغوی د جهاد پـه ډگرکی مصروف دی هغوی پخپل عزم اعتماد لري . . . . په خپل صبر یقین لـری او پــه تمامــه معنی پــه خپلــه سپیڅلی او برحقــه مجاهــده کی لــه الله تعالی(ج) نه راضی او خـوښ دی ، سکینه او ثبات ورتــه

شبهاتو له منځه وړلو په ارتباط باندی ستاسو په مخکی خپل معروضات وړاندی کړم . کوم مبارک آیتونه چی ما ستاسو په مخکی تلاوت کړه په هغو کی الله (ج) خپل پیغمبر(ص) ته فرمائی (یایها النبی حسبک الله) ای نبی! هر مشکل چی دجهاد په لار کی تا ته په نظر راځی اگر که هغه غټ وی یا کوچنی وی ، الله (ج) درته کافی دی او د الله (ج) له دربار څخه بل خواته نظر مه اړوه (ومن اتبعک من المؤمنین) د دغه آیت تفسیر په دوه ډوله شویدی . لومړی تفسیر دا دی چی هغه مسلمانان چی په اوسنی وخت کی له تا سره دی په عالم اسباب کی هغوی ستا لښکر او خدای (ج) تا ته کافی دی .

دوهم تفسیر دا دی چی خدای (ج) تا ته هم کافی دی او ستا هغه امتیان چی د قیامت تر ورځی پوری د کفر مقابله کوی ، هغوی ته هم بس او کافی دی . د دی ایت خلاصه داده چی ستا امتیانوته هم ددی ضرورت نشته چی یا په چین تکیه وکړی او یا په امریکا ، فرانس او انگریز متکی شی ، بلکه خدای(ج) ستاسو ملگری دی او ستاسو د مدد او مرستی لپاره خدای (ج) کافی او بسیا ذات دی . نو مسلمانانو ورونو زمونږ عقیده هم همداده څکه کله نه چی مونږ د روسانو او د هغوی

حاصل دی ، او پـدی متیقین دی چی دا جنگ به الله تعالی د مسلمانانو مجاهـدینو په نفعه ، او مطلوب هدف ته درسیدو په صورت کی ، چی هغه د یـو اسلامی حکومت قیام دی ، سر ته رسوی . او خـدای (ج) بـه روسان او د هغوی اخستل شوی غلامان د ذلت او شکست سره مخامخ او د خپلو ناوړو پلانونو په سرته رسولو کی نا کام او نامراده پاتی کوی .

اوزه ورونو ته ددی اطمئنان هم ورکوم! چی دا مجاهدین چی نن ئی د اسلام دښمنه روسانـو او د هغـوی د زر خریـدو غلامانو او ملحدانـو پـه مقابل کی د شرعی نصوصو او اسلامی احکامو مطابق توره راپورته کړیده او د هغوی پـه مقابل کی‌ئی ملسح قیام کړی دی دوی به په افغانستان کی د یو ازاد ، خود مختار ، ناپیلی او اسلامی حکومت د قیام نه پرته هیڅکله او په هیڅ صورت کی خپلی توری او وسلی پر زمکه کښینږدی ، او د خپلی برحقی مجاهدی څخه به لاس وانخلی . که بالفرض ددی جهاد په نیمایی پړاو کی یو داسی سیاسی حل رامنځته کیږی چی هغه د روسانو په گټه او ددی مظلوم ملت پـه خلاف یـو بل ظالمانه گزار وی . دا مجاهدین چی د یو اسلامی حکومت د قیام لپاره ئی نن تـوری او وسلی راپورتـه کړی ، دوی د خپل

خدای(ج) سره تعهد کړی، عزم او تصمیم لری چی پداسی سیاسی حل او مانورو به هیڅکله تیرنه وزی ، او هر هغه څه چی پسه افغانستان کی د یو ازاد ، خود مختار، او اسلامی حکومت د قیام په مقابل کی خنډ واقع کیږی په پوره میړانه او متانت سره به ئی مقابله کوی ، او د جهاد د اخری خط السیرپوری به خپلی حقه مجاهدی ته بی دکوم خنډ او توقف نه دوام ورکوی . او ددی سپیڅلی هدف د ترلاسه کولونه پرته به د یوی لحظی لپاره هم د خپل سنگر او مورچی نه راپڅرته نشی ، او په هر صورت کی به د خپلی حقه مبارزی نه د سرپه وینو سره دفاع کوی .

درنو او محترمو ورونو ! موږ ستاسو د اسلامی همدردی او ژور احساس نه په تمامه معنی مشکور او خو شحاله یو چی د مجاهدو او مهاجرو ملاتړ مو کړی مسلمانان مهاجرین مو په غیږ کی نیولی دی او د دوی د برحق دریغ پلوی موکړی دی دپاکستان مسلمانانو د همدردی، اخوت او نیکو جذباتو له امله زموږ د تبلیغاتو لاری ، د کومک او مرستو لاری، او همدارنگه د زخمی مجاهدینو د علاج معالجی تولی ستونزی حل او هموار دی . د روسانو سره د جنگ لپاره زموږ ملاتینگـه ده ددی نه علاوه چی تاسو دغسی کانفرانسونه د ائیروی ، مسلمانانوته د

جهاد دعوت او تشویق ورکوی ، دا په حقیقت کی د الله تعالی ددی امر په ځای کول دی، کوم کی چی الله تعالی خپل پیغمبر(ص) ته فرمایي : «ای نبی (ص) خلک په جهاد باندی ورتیز کړه» . تاسو چی د جهاد پنځوم کوم کنفرانسونه ، جلسی او تحریض بالقتال کوی خدای(ج) دی درته اجر عظیم درکړی او خدای(ج) مو په دارینوکی سرخرویه او سرفرازه لره. ما په خپل دغه راتک ‌کی ولیدل چی تاسو د افغانستان د مجاهدینو واقعی همدرد او محبان یاست . او پدی پوه شوم چی پاکستانی مسلمانان زمونږ د جهاد، سنګر او مجاهدینو مخلص ملګری او ورونه دی موږ د خپلو مخلصو او دعاګویو ورونو نه اظهار تشکر کوو ، او همیشه دا دعا کوو چی مجاهدین دی خدای(ج) په خپل جدوجهد کی موفق او کامیاب کړی او د پاکستان مسلمانان دی خدای(ج) د هر ډول شر او فتنو نه په امن لری .

قدردانو مسلمانانو ورونو ! د پاکستان او افغانستان مسلمانان لاڅه بلکه د ټول دنیا مسلمانان سره عقیدوی ورونه او همدرد دی . دا ټول خواره واره او پراګنده مسلمانان دی خدای(ج) سره متفق او د دنیا د کافرانو لپاره یو تندروګرځوی.

ورونو: دا سی نده چی افغانستان ازاد شی نو موږ به خپله

وسله په زمکه پرېږدو . موږ د خدای(ج) نه توفيق غواړو ، چې د هند او کشمير مسلمانان د هندوانو له سلطې نه ازاد او همدرد ئې وگرځو. او دفلسطين مسلمانانو ته د يهودانو له مظالموڅخه نجات ورکړو ، او همدارنگه د بلخ ، بخارا ، تاشکند او سمرقند مسلمانان دې خـدای(ج) زموږ په لاسونو او ذريعه د ظالمو او خونخوارو روسانو نه خلاص او د ازاد اسلامي ملک خاوندان وگرزوی. دا وسله چې نن‌مو راپورته‌کړی، ده دادئ خدای‌تعالی زموږ له لاسونوڅخه نه غورزوی ترڅو د ټولې نړۍ دمستضعفو او مظلومو مسلمانانو د نجات لپاره مصدر او ذريعه وگـرځو .
ای زموږ مقتدره خدايه ! د افغانستان مسلمانانوته د روس ظالم او جابر څخه نجات ورکړی ، او مجاهدينو ته صبر ، استقامت او ثبات ورپه برخه کړی .

يـا الله ! چاچې ستا پـه لاره کې جهاد ونـه‌کړی تـه ئې قبـول او منظـورکړی چـا چې ستا پـه لاره کې هجرت کړی ستونزی او کړاوونه ئې برداشت کړی . هجرت ئې قـبول او منظور کړی او چا چې د مهاجرو او دربدره رنجيده مسلمانانو معاونت او نصرت‌کړی وی ، خدای(ج) دې د هغوی معاونت






د دويم چاپ کال :- ۱۴۱۰ هـ ق ، ۱۳۶۸ هـ ش.
د خپرونو پرله پسې نمبر :- دريم.
د چاپ شمير : - ۱۰۰۰ ټوکه.

او امداد په خپل دربار کی قبول کړی. او هغوی دی‌خدای(ج) په واقعی انصارو کی حساب کړی .

ای خدایه ! تا د مجاهدینو د غیبی مرستی وعده کړی ، د خپلو غیبی خزانونه د هغوی ستونزو ته ځواب ووائی . د شهیدانو درجات بلند کړی ، مسلمان بندیان د ظالمو د شکنجو نه خلاص او په امن کړی . او زخمیانوته د نیک عمل لپاره شفاء کامله عطا کړی .

مقتدره ذاته ! په افغانستان کی نور دروسانو خلقیانو ، او پرچمیانو رزق قطعه‌کړی او پخپل کامل قدرت سره ئی دافغانستان د خاوری نه رسوا ، ذلیل اوشرمنده په تللو مجبور کړی او مسلمانانو ته تری نجات ورکړی .

خدایه ! ته زموږ جهادونه ، عملونه او کړه وړه ټول د خپلی رضاء لپاره وګرزوی او مونږ ته د نیک عمل توفیق را کړی .

**ربنا تقبل منا انک انت السمیع العلیم وتب علینا انک انت التواب الرحیم .**

• • •



د غلامانو (خلقیانو او پرچمیانو) پر ضد جهاد شروع کړی ؤ له مو په امریکا او دده په وسله تکیه کړی وه او نه مو د پاکستان او ایران نه د کوم مدد او تعاون توقع درلوده ، صرف د خدای (ج) په بروسه او تکیه مو جهاد شروع کړی ؤ او هماغه خدای (ج) له موږ سره مرسته وکړه .

اوس ځینی خلک دسیاسی حل خبری اتری کوی، خوترڅو پوری چی د مجاهدینو د خوښی سره سم او په شرعی اصولو ولاړ حل نه وی راغلی بیا به هم دغه جهاد او مجاهده په موږ فرض او مونږ به دا فریضه ادا کوؤ . دا به نه وایو چی ګوندی مونږ به هغه وخت څه کوو چی ایران او پاکستان مو له ملک نه وشړی اویا امریکا او چین وسله رانکړی . زمونږ ایمان او عقیده به دا وی چی (حسبک الله) پیغمبره! تا ته هم الله(ج) کافی دی ، (ومن اتبعک من المؤمنین) او کوم چی ستا امتیان او د دی کلمی (لا اله الا الله) ویسوونکی وی هغوی ته هم یوازی یو خدای (ج) کافی او د نورو خلکو ضرورت نشته . الله تعالی هغه واجب الوجود ذات دی چی زمکی ، آسمانونه ، حیوانات ، نباتات او بحروبر ټول ئی انسانانو ته مسخر کرځولی دی. نو هغه به زمونږ لپاره د پاکستان ، ایران بلکه د ټول عالم اسلام په

زړونوکی د مرستی او همدردی احساس هم پیدا کوي ، او همدارنگه به زمونږ لپاره د سیاسی حل بندوبست او د اسلحی انتظام هم کوی . او داځکه چی الله تعالی (ج) موجود ذات دی، چی هغه مو ونه شړی او د هغه کبیریا ذات (ج) د مرستی دروازی را باندی بندی او مسدودی نشی ، خلک به مو څرنگه وشړی . نو یوه مسئله داده او خلک باید پدی باندی وپوهیږی چی ! جهاد د خدای تعالی(ج) امر دی او خدای(ج) ئی په خپل اذن او اراده باندی په یوه قوم کی راولی او حفاظت ئی کوی.

نو زموږ د (مسلمانانو) بروسه او تکیه پدغه مقدس جهادکی یوازی او یوازی په الله تعالی ده او بس .

مونږ له دی لاری څخه هیڅ نه ویریږو ، چی گوندی کوم پیچیده سیاسی حل به رامینځته شی، دکومک دروازی به مسدودی شی او د روسانو په مقابل کی به مو جهاد سقوط شی .

بلکه د یو کامل مؤمن ایمان او عقیده به داوی چی د روسانو په مقابل کی زمونږ امداد کوونکی او نصرت کوونکی یوازی الله تعالی (ج) دی او وی به ، اوس ئی چی کومی لاری چاری راته مهیاء کړی دی بیا به ئی د دی نه هم راته زیاتی برابری کړی . نو پدی برخه کی باید هیڅوک شکمن نشی چی

څه په کېږي او څه به راشي .

ځکه چي د دي دين حافظ او ناصر الله تعالی دی . لکه چي فرمائي! (انا نحن نزلنا الذکر وانا له لحفظون) بيشک دين موږ نازل کړی دی او همدا موږ به ئې ساتو . په يوه بل ځای کی الله (ج) د جهاد په باره کی فرمائي !

(وجاهدوا فی الله حق جهاده هواجتبکم) تاسی د خدای(ج) په لاره کی د حق جهاد وکړی ، دی جهاد ته پروردګار عالم تاسی چنلی یاست. که فرض کړی تاسو جهاد ونه کړی نو الله تعالی(ج) ستاسو جهاد ته ضرورت نلری . ستا سوپه جهاد کولو او نه کولو باندی د خدای (ج) په خدای کی کوم کموالی اويا زياتوالی نه راځي ، او نه د هغه په حکومت او اقتدار کی کوم فرق راځي .

که چيری تاسو جهاد ونه کړی نو الله تعالی (ج) به ستاسی په ځای بل مجاهد قوم پيدا کوی او د جهاد کار به ورځخه واخلی. مطلب دا چی الله تعالی(ج) تاسو دجهاد لپاره انتخاب کړی‌یاست، تاسو جهاد کوی ستاسو خير په همدی کی نغښتی دی .

دوهمه مسئله داده چی! ډير خلک پدی شک‌کی مبتلا دی چی دافغانستان په جنګ کی دواړه خوا وی څوک دی ؟ ځينی خلک خو پوهيږی محضی ناوړه تبليغ ، پروپاګند او تخريب کوی او

غواړی چی ددی پذریعه د مسلمانانو په ذهنونو کی د جهاد په باره کی شکوک او شبهات پیدا کړی . او ځینی خلک په غیر شعوری توگه داسی خبری کوی ، ځکه چی هغوی په حقیقت کی د روانو حالاتو په هکله صحیح معلومات نلری .

د لومړی نظریی خاوندان وائی چی دا جنگ د روس او امریکا ترمینځ دی او پدی جنگ کی چی ددواړو خواوونه کوم خلک وژل کیږی هغوی د شرق او غرب په ایماء او اشاره له مینځه ځی . دا ټول د تخریبکاری لپاره یوه زهرجنه پروپاگنډه ده چی سل په سلوکی حقیقت نلری ، خو بیا هم په مسلمانانو کی ځینی ساده زړی مسلمانان موجود او پری تیروزی نه الله تعالی په قرآن کریم کی هم فرمائی ! (وفیکم سمعون لهم) په تاسو کی ساده او ضعیف العقیده مسلمانان شته چی د منافقینو خبری اوری او پری غولیږی، نوزه پدغه مسئله باندی هم بحث کول غواړم چی په افغانستان کی جنگ د چا او چا ترمینځ دی .

آیا د روس او امریکا جنگ دی ؟ او که د مجاهدینو او روسانو ترمینځ دی . روسان لا افغانستان ته نه وو راغلی چی خلقیانو د داؤد پذریعه قدرت ترلاسه کړ، د داؤد حکومت چی رامنځته شو د خلقیانو لوی لوی کسان ئی وزیران کړل اویا ئی

عسکری او ملکی لوی لوی پوستونه ور وسپارل ، پدی وخت کی علماء کرام، متعلمین او په دین پوه با سواده مسلمانان د هغوی پر ضد راپورته او په مقابل کی ئی ودریدل، چی د هغی وخت نه زما او زما په شان د ډیـرو کسانو یوولس کاله پوره کیږی، چی د داؤد په وخت کی مهاجر او د خلقیانو او پرچمیانـو په ضد مو عملیات پیل کړی ؤ . د داؤد نه وروسته دتره‌کی حکومت راغی د تره‌کی پرضد هم مسلمانانو جهاد وکړ، تره‌کی ووژل شو، او ورپسی د حفیظ الله امین دوره شروع شوه په همدی دوره کی روسان افغانستان ته را داخل شول او فوراً ئی حفیظ الله امین و واژه ببرک کارمل ئی رامینځته کړ کارمل دتاشکند راډیو له لاری دخپل حکومت اعلان وکړ . اوس نو ذکر شویو حالاتو نه دا معلومه شوه چی جنګ د مجاهدینو او روسانو تـرمنځ دی ، نه دا چی د امریکائیانو او روسانو ترمنځ دی. بلکه روسان خو اوس پخپله پدی اعتراف کوی چی سږکال ۱۹۸۶م مونـږ خپل شپږ غنډونه عسکر د افغانستان د مختلفو ناحیو او سیمونه بیرته خپل هیواد (روس) ته راستانه کړه . روسان خو اوس دی ته هم تیار دی‌او وائی چی دا مسئله دی د مذاکـراتو لـه لاری حل وفصل شی ، او همدارنګه اقرار کوی چی د مجاهدینو لخوا د دوی الوتکی په

توغندیو ویشتل کیږی ، ټانکونه ، موټر ، او عراده جات ئی له منځه وړل کیږی او عسکری قرارګاوی ئی تخریبیږی . د نجیب لخوا هم دا رنګه د رواغجن اعلانونه کیږی چی مجاهدین ددوی ښوونځی او عالی مؤسسی سوزوی، او همدا راز سړکونه او پلونه ئی ویجاړوی . روسان دعوه کوی چی پدی جنګ کی د امریکا ، چین ، ایران او پاکستان لاس دی، او زمونږ عسکری قطعات افغانستان ته د خارجی مداخلت د مخنیوی لپاره داخل شوی دی که چیری خارجی عدم مداخلت تظمین شی موږ حاضر یو چی خپل محدود قطعات دافغانستان څخه راوغواړو . اوس دا پوښتنه پیدا کیږی چی دا خو ټول جهان ته په ډاګه ده او پدی کی د هیڅ شک وشبهه نشته، چی په افغانستان کی نه دامریکا ټیا نو ټانګ او طیاره شته دی ، او نه ئی عسکر او مشاور شته دی همدارنګه د چین ، ایران ، او پاکستان هم داشیان په افغانستان کی هیڅ نشته دی. پدی اته کلن مسلسل جنګ کی د امریکائیانو نه کوم عسکر وژل شوی دی ، نه زخمی شوی دی او نه نیول شوی دی ، دا څنګه امریکنی عسکر دی چی نه مړه کیږی نه نیول کیږی نه زخمیان کیږی او نه دهغوی کوم ټانګ تخریبیږی. او نه ئی کومه الوتکه راغورزول کیږی . د دی برعکس

روسي ټالګونه روزانه تخريبيږي الــوتکي ئې روزانه له منځه ځي او پــه زرهاوؤ روسي عسکر ددې جنګ په اوږدو کي له منځه تللي دي، او له منځه ځي، او زيات شمير ئې مجاهدينــو ژوندي نيولي هم دي . روسانو ترننه پورې په افغانستان کي د امريکي ، چيني، ايراني ، او پاکستاني عسکرو د موجوديت کوم ثبوت ندی وړاندي کړی، نو دا خبره بالکل واضحه شوه چي په افغانستان کي د روس نه بغير بل هيڅ کــوم خارجي مداخلت ندی شوی ، يوازي وحشي روسان دي چي په دې جنايت مرتکب شوی دي. ځرنګه چي په افغانستان کي د امريکا ، چين ، ايران او پاکستان نه بلکه يوازي د روس عسکر موجود دي نو دا سوال په پيدايږي چي آيا دروسي عسکرو په مقابل کي داجنګ څوک کوی؟ د دې سوال جــواب پــه سلها ؤو زره د شهادت د نذراني پيش کوونکي افغان مجاهدين دي ، او دادې خبري ناقابل تــرديد ثبوت دی چي په افغانستان کي جنګ د روس او مجاهــدينو ترمنځ دی .

تــرکومه پورې چــي پــدې مسئله کي د مغربي او دوستو هيوادونو د تعاون او مرستي تعلق دی ، نو هغوی مهاجرينو ته خوراکي مــواد ، ادويه ، کمبلي او ملابسه راليږي، نو تاسو په

ظالم ته ئې خوله ماتوونکې او غابس ماتوونکې ځواب ورکړیدی، او دا هر څــه یـوازې او یوازې د الله تعالی(ج) پـه امـداد او نصرت سره کیدای شي او بس .

د همدې ځای نه ده چې د دې ځـواب ورکوونکې به هم هغه خلک وې چې یوازې او یـوازې د الله تعالی پـه مقتدر او تـوانـا ذات عقیده لري ، د هغـه پـه نصرت او امداد ئې تکیه وې ، او نور ټول قوتونه مجازي او بې اثره وګڼي .

په پورتنی اساس دافغانستان په مقدسه او اسلامي خاوره‌کې د دې خاورې د عقیدت منـدو مسلمانانو په همت او میړانه د هیڅ یـو جـابـر او ظالم شخص شپې او ورځې هم نـدي صبا شوي . د چنګیزیانو نه‌راواخله تر سرو روسانو پورې ، هر چا پدغه خاوره خپلـه لنډه منډه ترسره کړیده ، مګر د دې خاورې ګرد ئې دخپلو پښو سره واپس نـدي وړي، او دا ځکه چې همدغې خاورې دهغه د هـډونو لپاره خپله سینه پراخه کړې، او همدلته ئې د خدای(ج) پـه فضل و کرم سره د هغوی هـډونـــه د خاورو سره خــاورې کړیدي .

دا هغه مسلمان قوم دی چې همیشه ئې د خپلو وینو په

خروبولو سره دغـه اسلامی سیمه گلزار ساتلی ده ، او خپلی پاکی وینی ئی ورته نذرانه کړیدی .

د ازمایښتونو پدی لړی کی اوس د افغانستان مسلمانـــان دا توکلونو راهیسی د وحشی صفته درندهگانو (روسانو) سره لاس په گریـــوان دی . دی قطبی خرسانـو پـدی اته کلنـه دوره کی د افغانستان په مظلومو او بیوزلو مسماتانـو باندی د هیڅ قسم ظلم ، جبر ، او وحشت نمونـــه پری نښوده .

خپل تول ظلم، جبر، او وحشت ئی پدی مظلومو او بیوزلو مسلمانانو باندی سرته ورساوه .

داسی مدرنه اسلحـه نشته ، چی د افغانستان پـــه مسلمان ملت استعمال شـوی نـه وی ، داسی کانی او بوتی نشته ، چی د شهید په وینـو خروب شـوی نـــه وی . داسی ونه او فصل نشته ، چی د روسانو د وحشت او بربریت نښه ونلری . داسی کور او ودانی نشته ، چی د جیټ اوگن شیپ هیلوکوپترو میوزی او بمبارد پری نـه وی شوی . او هم داسی بندیخانـه نشته ، چی د افغانستان په علماء کرامـو او اسلام مینو خلکو ډکه شوی نه وی .

خو د دغو تولو ظلمونو او وحشتونو پواسطه روسانو وتکړای شوای ، چی د افغانستان مسلمان ملت ته د غلامی هار وریه غاړه کړی ، او دغه معتقد مسلمانان غلامان او د ځان ایل کړی . او دا ځکه چی د دغی خاوری بچیانو د همیشه لپاره د خدای(ج) اسره نیولی ده ، او د تکبیر په کفر لړزوونکو نعرو ئی عمل کړیدی .

دا هغه مجاهد قوم دی چی انګریزان ئی د خپل ملک څخه په زور ایستلی دی ، او دچنګیزیانو په کور ئی ماتم جوړ کړی ؤ . دا دهغه فاتح (خالد بن ولید) اولاده دهکوم چی د خدای(ج) په اتکاء او نصرت به ئی د عربو په جزیره ، فارس ، ایران او نورو هیوادوکی فتحی کولی ، انشاء الله دوی به هم د خپلو نیکونو د نقش قدم په تعقیب سره د تاریخ پدی حساسه او مهمه مرحله کی روسانوته داسی سبق ورکړی ، لکه څنګه چی ئی انګریزانو ته ورکړی ؤ او لاتر اوسه ئی په یاد دی . د تاریخ د پورتنیو کرښو د ښرګندولو لپاره غوارم د پښتو ژبی د نومیالی شاعر خوشحال خان ختک یوڅو بیتونه دلته ولیکم ، لکه چی وائی !

لاتر اوسه ئی ساغزه په قرار ندی
چاچی ماسره وهلی سر په سنګ دی

لا په خوب کی په لړزه پریوزی ئه کته
چی د چا تر غوږ زما دتوری شرنګ دی

د پورتنیو دوؤ بیتونو په استناد لیکلی شم . د کوم وخت نه چی روسان د افغانستان خاوری ته را داخل شویدی او ددی مسلمان ملت د توری شرنګ ئی غوږ ته رسیدلی دی ، په خوب کی خو لاڅه چی په ویښه هم له کته راغور ځی، او هغه داچی ګله د اوربند کله د ملی روغی جوړی او کله د سر ورو ورونو په الفاظو سره غواړی چی د افغانستان د مسلمان ملت څخه ځانته د نجات لاره پیدا کړی . همدارنګه روسانو اوس د تا وده جنګ په نتیجه کی خپل شکست او ماتی د عمل په میدان کی ولید نه او دائی ومنله چی پدی مؤمن او مجاهد ملت باندی د توری او برچی په زور حکومت کول، یو پوچ ګمان او خیالی تصوردی .

لیکن افسوس دی چی دا طاغوتی او شیطانی قوتونه اوس د تاوده جنګ پرځای د ساړه جنګ پهواسطه د دی روښانه او پهدللی مسئلی په وړاندی خندونه او کوړلیچونه پیداکوی، او پدی

هڅه کی دی چی د دی مجاهد او شکست نه قبلوونکی قوم پــه مقابل کی د تاوده جنګ ستراتیژی ته په تغیر ورکولو سره دساړه جنګ ستراتیژی غوره، او ترشائی غلچکی عملیات وکړی نا سړده دښمن اوس د دی مجاهد ملت پــه مقابل کی له مادی لحاظه په خپل یو غیر متوازن او نــه مقایسه کیدونکی جنګ کی یو لړ په اصطلاح دیپلوماتیکی تهاجمی مانورونه پیل کړی دی . او غواړی چی د خپلو ناپاکو غوښتنو د تر سره کولو او د خپل بایللی جنګ د بیرته ګټلو په خاطر د درواغجنو تبلیغاتو او ناوړه پروپاګند پذریعه وکولای شی چی ددی څرګندی مسئلی او برحقه مجاهدی اصلی خط السیر تحریف او بالاخره سبوتاژ کړی .

درنــو لوستونکــو : دا ورکوتی رسالــه چی ستاسی مخ ته پرته ده ، د افغانستان د اسلامی حزب د پکتیا ولایت دغښتلی او زړور قوماندان مولوی جلال الدین حقانی صاحب د هغی شفاهی وینا متن دی ، چی د ګجرات په ښارکی ئی د (حرکة المجاهدین) ګوند لخوا په یوه جوړشوی جهاد کانفرانس کی ګڼ شمیر انصارو، مجاهدینو او مهاجرینو ته د (آیا د افغانستان جنګ د روس او امریکا جنګ دی ؟) تر عنوان لاندی ایراد کړی وه .

سونږ د هغه دغه وینا لــه یوي خوا د تاریخ په پانو کی

د ساتلو لپاره او له بلې خوا دروانو حالاتو او د افغانستان د قضيې د حقيقي تمثيل په ارتباط دکستې څخه پياده آو د يوې کتابچې په يو څوپانوکې راغونده کړه . که چيرته په ادبي لحاظ له ما نه کومې غلطي شوې وې ، د مجاهد ورور (حقاني) او درنسو لوستونکو څخه مخکې له مخکې ښښنه غواړم .

د مولوي جلال الدين حقاني صاحب شخصيت د کومې ستاينې محتاج ندی .

نوموړی که له يوې خوانه د انقلاب له اولې ورځې راهيسې د جهاد په اوږدوکې زيات فتوحات حاصل کړيدي، اويائې د جهاد په گرم سنگرکې دشاهين صفته مجاهدينو مورال او حوصلې لوړې ساتلې دي. نو له بلې خوانه ئې په علمي‌او سياسي ميدان‌کې هم ديو ممتاز معلم پياوړی لارښود او ليوال رهبر په حيث دحق د لارې مجاهدينو راهنمائي کړې ده. او د خپل سياسي او نظامي بصيرت پـه رڼاکې ئې د يو رښتوني داعي او ممثل په توگه خپل موقف څرگند کړيدی . او دائې جوته او ثابته کړې ده چې د اسلام مينو او عقيدتمندو قومونو د ازادی ، سوکالی ، آبادی او مطلوب هدف ته درسيدو لپاره که يـو لاس کې توره پـه کار ده نوبل لاس کې قلم ،که د تن وينې توئيول غواړی نـو د ذهن

# آیا د افغانستان

# جنګ

## د روس او امریکا جنګ دی

وینا وی

الحاج مولوی جلال الدین "حقانی"

ترتیبونکی

عبدالصادق ملاخیل

دویم چاپ

ډیوه هم بله ساتل په کار دی . دا کتاب ګوتی د نوموړی دفصاحت ، بلاغت، ژور فکر، نکته رس او علمی انداز یو ښکاره ثبوت دی .

حقانی صاحب چی په کوم انداز کی په ساده او سلیسی لهجی سره دا سلام د لافانی تعلیماتو په رڼاکی د جهاد په علمی بعد او روانو حالاتو باندی کومه رڼا اچولی ده په ریښتیا سره چی هغه زموږ د مبارزی په روانه لړی کی یو نه هیریدونکی سبق دی .

نه غواړم چی د خپلی سریزی په اوږدیدو سره د خوږو لوستونکو توجه او پاملرنه د زیات وخت لپاره جلب او مبذول وساتم . او د کتاب د کتنی دتلوسی په ترڅ کی حایل واقع شم خپله ماته ګوده مقدمه سره رانغاړم او خپلو مجاهدو ورونوته د نومیالی مجاهد د وینا د لوستلو بلنه ورکوم .

په مینه

عبدالهادی «ملاخیل»

لاهور ۱-۱۲-۱۹۸۷





دحق او حقانیت دلاری تتر مجاهد مولانا جلال الدین «حقانی»

# آیا د افغانستان جنګ
# د روس او امریکا جنګ دی؟

ویندوی

مولانا جلال الدین حقّاني

ترتیبوونکی

عبدالهادي ملاخیل




د منبع الجهاد د اداری له خپرونو څخه

د کتاب نوم : آیا د افغانستان جنگ د روس
او امریکا جنگ دی ؟

ویندوی : مولانا جلال‌الدین حقانی

ترتیبوونکی : عبدالهادی «ملا خیل»

خپرونکی موسسه : د منبع الجهاد اداره .

د ادارې د پرله پسې خپرونو نمبر : دریم

د خپرونې نیټه : ۱٤۱۰ ه ق ربیع الثانی میاشت

د دې چاپ شمیر : «۱۰۰۰» توکه .

# سریزه

دا یومنلی او په ثبوت رسیدلی حقیقت دی ، چې د کردی نړی مسلمانان له هغی ورځی راهیسی چې د اسلام مقدس دین د حراء په غار کی تبارز وکړ ، له ډول ډول ازمایښتونــو سره مخامخ شویدی . که څه هم د ازمایښتونو ترمینځ فرق او توپیر موجود وی ، خو په مجموعی توګه دا په زغرده سره ویلای شو چې د نړی مسلمانانو لــه هغی وخت نه راواخلـه ترننه پوری د خپلو ادوارو او وختونـو له فرعون صفته او بدمسته خوګانو سره مقابله کړی ده ، او بالاخره ئی د خپلو ازمـایښتونو مراحل طی کړی دی .

خو ټولی نړی تــه دا پـه ډاګـه او جــوتــه ده چې د افغانستان غیورو مسلمانانو د خپل وخت پدی ټولو ازمایښتونو کی د پوره میرانی او همت څخه کار اخستلای دی ، هر جابـر او